ورځپاڼه

# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا

د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز

**یکشنبه د شعبان المعظم ۱۰مه ۱۴۴٦ق کال،** د سلواغې ۲۱مه ۱۴۰۳ ل کال، د فبروري ۹مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه ۵۳۹مه، پرله پسې ګڼه ٦۲۹مه، اتمه دوره

د ملي دفاع وزارت:

## د افغانستان هلیکوپټرې دې بېرته افغان حکومت ته وسپارل شي

د افغانستان د ملي د فاع وزارت د ازبیکستان هېواد څخه امریکا ته د افغـان هلیکوپټرو د انتقال په اړه ویلي، په دې اړه اسـلامي امارت اندېښمن دي. د ملي دفاع وزارت په خپـره کړې خبرپاڼه کـې ویـلي، دا هلیکوپـټرې د افغانسـتان ملکیـت دی او باید بېرته افغان حکومت ته وسپارل شي. په خبرپاڼه کې ویل شوي، دا چې ازبیکسـتان تـه د تېرې ادارې د چارواکو د تېښـتې پر مهال انتقال شـوې هلیکوپټرې د هـر دلیل له مخـې امریکا ته او امریکا دې بېرته افغانسـتان انتقالېـږي د منلـو وړ نه دي او افغانان حق لري چې د خپل حق غوښتنه او پوښتنه وکړي. د ملي دفـاع وزارت له ګاونډیو هېوادونـو غوښـتي ،چـې د افغانانو حق ته دې درناوی ولري تـه د یـادو تولو الوتکـو د را انتقالېدو په لاره کې خنډونه نه جوړوي. د یادونې وړ ده، چې د افغانستان ګنې چورلکې د کابل د فتحې پر مهـال د تېرې ادارې د چارواکو له لوري د تېښتې پر مهال ګاونډیو ...۳مخ



## د پاکستان له زندانونو ۴۲ افغانان آزاد شول

د کډوالو چـارو وزارت وایي، په دې تازه راخوشـي شویو ۴۲ بندیانو کې ښـځې او ماشومان هم شـامل دي چې د تورخم له لارې هېواد ته راسـتانه شـول. د کډوالـو چـارو وزارت ویلي، دغه بندیان اسـلام آباد ښار کې د قانوني اسـنادو نه لرلو له کبله نیول شوي وو او له ۲ څخه تر ۵ ورځو...۳مخ

## د بهرنیو بنسټونو د مرستو کمېدل به د هیواد پر اقتصادي ودې اغېزه ونه لري




پر افغانستان د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسـته د نړیوالو او په ځانګـړې ډول د امریـکا له لوري سیاسي، اقتصادي او بانکي بندیزونه دوام لري.له دې سره، امریکا د یوه بل ګام په پورته کولو سره د خوړو له نړیوال پروګرام(ډبلیو.اېف.پي) غوښتي چې په بېوزلو هېوادونو کې د امریکا بشري مرستې وځنډوي.د رویټـرز خبري آژانـس د راپور له مخې، امریکا دغه مرستې وروسته له هغـې ځنډوي، چـې د جنوری پر ۲۴مـه، د امریکا د بهرنیو چارو وزارت د ژونـد ژغورنـې بېړنـۍ مرسـتې لـه دې بندیزونو مسـتثنا اعلان کړې.د رویټرز خبري آژانس د راپـور یـوه برخه: (( په داسـې حال کې چـې د امریـکا د بهرنیو چـارو وزارت د خـوړو د نړیوال پروګـرام پـه اړه یې سـمدسي څه نه دي...۳مخ

## د افغانستان د سرحدونو ساتنه نوره هم پیاوړې کېږي

د ملي دفاع وزارت خبر ورکړی، چې د جګړه ییزو ګډو زده کړو قوماندانـۍ لـه سرحـدي فوق العـاده زده کړو څخـه ۵۳۵ تنه منسوبین فارغ شول. د ملي دفاع وزارت د خـبر له مخـې، دغه منسـوبین د عبدالله بن مسـعود رض د جګړه ییزو ګډو زده کړو قوماندانۍ د بنسـټیزو زده کړو ښوونځي...۳مخ



د مالیې وزارت:

## د کارخونو مسئولین دې د تولیدي توکو کیفیت ته پوره پاملرنه وکړي

د مالیـې وزارت د ګمرکونـو او عوایدو معین مفتي عبدالمتین سعید، د کانونو او صنایعو خونې د رئیس یـاد وزارت د یـوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي چې نوموړي په دې لیدنه کې ویلي چې له صنعت



شېرباز کمین زاده په ملتیا د کابل ښار له یو شمېر صنعتي کارخونو څخه لیدنه کړې ده. څخـه ملاتـړ او د صنعتکارانو ستونزو ته رسـېدنه یې له کاري لومړیتونو څخه دی...۳مخ

## کندز کې ۳۰ ټنه زاړه درمل او بې کیفیته خوراکي توکي وسوځول شول

د کندز ولایت د عامې روغتیا ریاسـت مسـئولینو په دغه ولایت کې د ۳۰ ټنه تاریخ تېرو درملو او بې کیفیته خوراکي توکو د راټولولو او سوځولو خبر ورکړي دي.

د یاد ریاست رئیس ډاکتر محمد الله حکمت باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې...۳مخ

## د هرات صنعتي ښارګوټي کې د غالیو صنعت وده کړې

د هرات د کانونو او صنایعو خونـې د دې ولایـت پـه صنعتي ښارګوټي کې د غالیو صنعـت د ودې پـه اړه خبر ورکړی.یاد صنعتي ښارګوټي کې هره ورځ څه باندې ۲۰۰ تنه هېـوادوال پـه بېلابېلو شـفټونو کې په کار بوخت دي او شاوخوا څلور زره او ۵۰۰ متره مربع غالۍ د هېواد د بازارونو لپاره تولیدوي.له بلې خوا د هرات د کانونو او صنایعو خونې رئیس حمیدالله



خـادم هـم ویلي، چـې د دې ولایـت په صنعتي ښـارګوټي کـې د غالیو د تولید او پلور په برخه کـې له زرو زیات هېـوادوال په مسـتقیم ډول په کار بوخت دي.نوموړي ټینـګار کـړی، چـې د کارخونو په پرانیسـتلو سره به ګڼ شـمیر هېوادوالو ته د کار زمینه هم برابره شي.د یادولو وړ ده، چې د اسلامي امارت له خوا په هېواد کې د صنعت او پانګونې د زمینې په برابرولو سره همدا اوس د دې ولایت...۳مخ

## د هرات-کندهار د وسپنیزې کرښې ۵ ترونونه لاسلیک شول

د ټولګټـو وزیـر مـلا محمد عیـسي ثـاني د هرات-کندهار د ۷۳۷.۵ کیلومـتره وسـپنیزې پنځـو شرکتونو سره لاسـلیک کـړل، چـې د اتو میاشـتو په موده کې به یې چارې بشـپړې



کرښـې د تفصیلي ډیزاین اړوند پنځه ترونونه د شـاوخوا ۲٦۴ میلیونه افغانیو په ارزښـت له شي.لومـړۍ برخـه: د هرات-شـینډنډ مسـیر دی، چې ۱۲۰ کیلومتره اوږدوالی...۳مخ

## د تخار درقد ولسوالۍ کې د آمو سیند د څنډو د تحکیماتو کار پیل شو

په شـمال ختیځه حـوزه کې د آمـو سـیند غـاړو د رغولو پـه دوام، د تخـار لـه ینګي قلعه ولسـوالۍ وروسته تازه په درقت ولسـوالۍ کې د دې پروژې د اتـم لاټ چارې پیل شوې.په شمال ختیځ زون کې د آمو سـیند دتحکیماتو رئیس مولـوي سـید غلام مشـواڼي وایـي، پـر دې پـروژې ٦۵ میلیونه افغانۍ لګښـت راځي چې د هېواد د اوبو او انرژۍ وزارت لـه خـوا تمویلېږي او په ۱۱ میاشـتو کـې به یې چـارې بشـپړې شي.د تخار د درقد ولسوالۍ اوسېدونکي د دې سـترې پروژې د چارو په پیلېدو خوښـي څرګندوي او وایي، چې د چارو په بشپړېدو



سره بـه په دې ولسـوالۍ کې د زرګونـه جریـبه کرنیـزو ځمکو او د استوګنو کورنو د تخریب مخـه ونیول شي.هغه کارګـر چې په دغـې پروژې کې ورتـه د کار زمینه برابره شـوې خـوښ دي او ویاړې چـې د اوبو پـه مهارولو او د هېواد پـه ابادولو کـې خپله برخه په خـورا هېودنۍ مینې پـالي.د تخار ولایـت په درقد ولسـوالۍ کې د امو سـیند د غـاړو رغولـو چارې داسـې مهال پیل شـوې، چـې له دې وړانـدې د دغـه ولایـت په ینګـي قلعه ولسـوالۍ کې د دغې پروژې ۷ لاټه بشـپړ او د دغه ځپاند سـیند د تخریب مخه نیول شوې ده.

## ۱۵۲۰۰ ټنه طبي بوټي بېلابېلو هیوادونو ته صادر شوي

د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو راهیسې د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه اللـه) د فرمان له مخې د کوکنـارو د کښـت، پېـر او پلـور پـه بشـپړ ډول مخنیوی شـوی، خو تـر یـوه بریده یې ځای طبـي بوټو نیولـی دی.د صنعـت او سـوداګرۍ وزارت ویانـد اخوندزاده عبدالسـلام جواد وایي، تېـر ۲۰۲۴ زېږدیز کال کې د شـاوخوا ۲۰ میلیونو امریکایي ډالرو په ارزښت ۱۵ زره ۲۰۰ ټنه طبـي بوټي بهرنیو هېوادونو ته صادر شـوي، چې زیاته برخه یې انجه او شـیرین بویـه تشـکیلوي.د نوموړي د معلوماتـو لـه مخې؛ یـاد طبي بوټي له افغانسـتان څخه هند، متحده عربي اماراتو، پاکستان، شـوي دي.د شـنونکو په باور، افغانستان د کوکنارو د مخنیوي



ترکیـې، قرغیزسـتان، ایـران، چین، امریکا، کانـاډا، جاپان، اوکرایـن، روسـیې او نـورو بېلابېلـو هېوادونـو تـه صادر برخه کـې خپل مسـئولیت ادا کـړی او اوس دې نړیواله ټولنه له ژمنې سره سـم پـه دې برخه کې خپل مسئولیت...۳مخ




## د ترکمنستان ولسمشر د ټاپي پروژې د کار پر چټکتیا ټینګار وکړ

د ترکمنستان ولسـمشر سردار بردي محمدوف د ټاپي پروژې د کار پر چټکتیا ټینګار کړی دی. د نړیوالو رسنیو د راپورونو له مخې، ده د کابینې په غونډه کې ټینګار کړی، چې د دې پروژې پلي کول باید په ۲۰۲۵ کال کې په چټکۍ سره دوام وکړي. د ټاپي پروژه په سـیمه کې د ګازو د لېږد یوه له سترو پروژو څخه ده، چې په ۲۰۱۵ کال کې پیل شوه.



## سږ کال نږدې ۲۰۰۰ پېښو ته رسېدنه شوې

پېښـو ته د رسـېدو او اور وژنې ریاسـت وایي: په روان ۱۴۰۳ کال کې یې شـاوخوا ۱۸۰۰ طبیعي او غیر طبیعي پېښو ته رسېدنه کړې.پېښو ته د رسـېدو او د اور وژنې اداري رئیس حافظ نورالله انصار وایي، د پېښو د کنتـرول او مخنیوي پایله کې یې د څه بانـدې څلور میلیاردو افغانیو او ۱۲ میلیونو ډالرو په ارزښـت خلکو ته د زیان اوښتو مخه هم نیولې ده. نوموړي زیاتوي، په همدې...۳مخ

## سرلیکنه



# کابل؛ ښاري نظم او د خلکو مسئولیت

کابل د افغانستان له ټولو ګڼ مېشتی ښار دی، چې د نفوسو د زیاتوالي او اقتصادي بې‌ثباتۍ له امله یې ښاري نظم د پام وړ کمزوری شوی. د سړکونو تنګوالی، د لاسي ګاډیو او غرفو زیاتوالی او د سړک غاړې ته پېر او پلور، هغه ستونزې دي چې نه یوازې د ترافیکي ستونزو لامل ګرځي، بلکې د ښار ښکلا او د خلکو ورځني ژوند ته هم زیان رسوي. د دغو ستونزو د حل لپاره اړینه ده چې یو واقعي، عملي او د افغانستان له شرایطو سره سم پلان عملي شي.

د سړکونو تنګوالی او د ښاري پراختیا نشتوالی، د کابل د نظم خرابېدو یو عمده لامل دی. ښار د تېرو څو لسیزو جګړو له امله غیرمنظم پراخ شوی، خو د ترافیکي نظم، عامه ترانسپورت او د ښاري پلان مطابق د سړکونو پراختیا ته لازمه پاملرنه نه ده شوې. بل اړخ ته، د اقتصادي ستونزو له امله، ګڼ شمېر خلک د دندو د نشتوالي له امله اړ دي چې د سړکونو پرغاړو د توکو خرڅلاو ته مخه وکړي.

د ښاري نظم رامنځته کول یوازې د حکومت مسئولیت نه دی، بلکې عام وګړي، رسنۍ، استادان او بانفوذه شخصیتونه هم باید خپله ونډه ادا کړي. د ستونزې د حل لپاره لاندې اقدامات ګټور تمامېدای شي:

**۱- د پلورونکو لپاره د متبادلو اقتصادي فرصتونو برابرول:**

په کابل کې د سړکونو غاړې ته پلورونکي زیاتره هغه کسان دي چې د بېوزلۍ له امله بل کار نه لري. که د اوږدمهالي پلان له مخې د دوی لپاره د کار متبادل فرصتونه برابر شي، نو دغه ستونزه تر ډېره حده حل کېدای شي. حکومت کولی شي چې د ښار دننه او شاوخوا د اقتصادي زونونو، منظمو مارکېټونو او د کوچنیو صنعتونو د پراختیا لپاره ځانګړي پروژې پیل کړي، څو دغو کسانو ته د کار زمینه برابره شي.

**۲- د سړکونو پراخوالی او هوایي پلونه:**

کابل ښار ته په کتو، د ځینو سړکونو پراخول او د ترافیکي نظم لپاره د مشخصو لارو جوړول، یوه عملي حللاره ده. دغه راز، په ښار کې د هوایي پلونو جوړول کولی شي چې د خلکو تګ راتګ اسانه کړي.

**۳- د عامه پوهاوي پراخول:**

ښاري نظم یوازې د سړکونو په پراخولو او د غرفو په لرې کولو سره نه شي راتلای، بلکې د خلکو ذهنیت باید بدل شي. رسنۍ، دیني عالمان، استادان او بانفوذه شخصیتونه باید خلکو ته دا وښیي چې ښاري نظم نه یوازې د ښار ښکلا زیاتوي، بلکې د ټولو لپاره ژوند اسانه کوي.

رسنۍ باید د ښاري نظم پر ارزښت مستندونه، بحثونه او د عامه پوهاوي ځانګړي پروګرامونه چمتو کړي.

استادان باید د خپلو زده‌کوونکو له لارې د ښار نظم ته وده ورکړي او هغوی ته د ښاري ژوند اصول ور زده کړي.

دیني عالمان کولی شي د دین له نظره خلکو ته دا وښیي چې د عامه ځایونو پاکوالی، نظم او د نورو خلکو حقونو ته درناوی، د اسلام مهم اصول دي... **۳مخ**

# د ټرمپ پټ پلان او د غزې ستراتیژیک اهمیت؛ د اسلامي نړۍ مسئولیت څه دی؟

د غزې په اړه د ټرمپ وروستۍ څرګندونې د یوې خطرناکې سناریو نښې لري.

د نوموړي د غزې د بشپړ تخریب او د فلسطینیانو د بې ځایه کولو پلان یوازې یو عادي نظر نه؛ بلکې یو منظم استعماري اقدام ښکاري. ټرمپ غواړي، فلسطینیان له غزې وباسي او عربو هېوادونو (مصر او اردن) ته یې انتقال کړي، غزه د امریکا تر مستقیم یا غیر مستقیم کنټرول لاندې راولي او دا سیمه پر یوې نړیوالې سیاحتي سیمې بدله کړي، چې هدف یې د فلسطین هویت ورکول دي.

دغه راز په دې کارسره غواړي امریکا ته پلمه برابره کړي، چې هلته پوځي حضور پراخ کړي او اسرائیلو ته د غزې د نیولو قانوني توجیه ورکړي.د غزې جغرافیايي (د سمندر څنډې) او ستراتیژیک اهمیت ته په کتلو دغه سیمه یوازې یوه عادي سیمه نه، بلکې د منځني ختیځ یو مهم ستراتیژیک مرکز دی.غزه د مدیترانې سمندر ته مستقیم لاسرسي لري، چې دا اسرائیلو ته د لویو بندرونو د جوړولو او اقتصادي پراخوالي یو مهم فرصت ورکوي.

همدارنګه که اسرائیل غزه کنټرول کړي، نو دا به مصر ته مستقیم امنیتي تهدید وي، ځکه چې اسرائیل به د سینا صحرا ته ځان ورسوي.دغه راز غزه د فلسطین د ازادۍ د مقاومت یو قوي مرکز دی، که له منځه یووړل شي، نو د فلسطین مبارزه به کمزورې شي.

اسلامي نړۍ باید څه وکړي؟

که اسلامي نړۍ د غزې موضوع جدي و نه نیسي، نو د فلسطین قضیه به د تل لپاره ختمه شي.

ځینې مهم اقدامات چې باید اسلامي نړۍ یې ترسره کړي، په لاندې ډول دي.

اسلامي هېوادونه دې په نړیواله کچه فشار راوړي، ملګري ملتونه، د اسلامي همکاریو سازمان (OIC) او نور نړیوال بنسټونه باید دا مسئله رسمي کړي، تعقیب یې کړي او د ټرمپ د طرحې مخه باید ونیسي.

مصر او اردن باید ښکاره دریځ ونیسي، چې دوی به د فلسطینیانو د بې ځایه کولو لپاره څمکه ورنه کړي؛ سعودي عربستان، ترکیه، قطر او نور باید د فلسطینیانو د بقاء لپاره مالي او سیاسي ملاتړ زیات کړي؛ د فلسطین مقاومت باید پیاوړی شي، ځکه چې یوازې سیاسي خبرې د ټرمپ د طرحې مخه نه شي نیولی؛ حماس، اسلامي جهاد او نور مقاومت کوونکي ګروپونه باید پراخې دفاعي ستراتیژۍ جوړې کړي.

عام مسلمانان باید د غزې د دفاع لپاره فشار راوړي، مظاهرې وکړي او خپل حکومتونه دې ته اړ باسي، چې جدي اقدام وکړي.د اسرائیلي محصولاتو بایکاټ، د امریکا پرضد اقتصادي اقدامات او د فلسطین د مظلومو خلکو ملاتړ باید عملي شي.

# د اقتصاد وزارت: د بېکارۍ کچې د راټیټولو لپاره بېلابېل پلانونه په پام کې نیول شوي

بېوزلي، بېروزګاري او په ټوله کې د خلکو کمزوري اقتصادي وضعیت هغه ننګونې دي، چې افغانان ورسره مخامخ دي.د اقتصاد وزارت مسلکي معین له رسنیو سره په مرکه کې ویلي،چې تېرو ناخوالو او د امریکا له خوا د افغانستان دخلکو د شتمنیو کنګل کېدو دخلکو پر اقتصاد سیوری غوړولی ، خو هیله ده چې د سړک جوړونې، ودانیزو چارو، روغتیا، انرژۍ او کرنې په برخو کې به نړیوال بانک هغه نیمګړې پروژې بېرته پیل کړي چې د یاد بانک له خوا تمویل کېدې.عبداللطیف نظري ټینګار کوي چې په دې برخه کې له نړیوال بانک سره بحثونه او ګټورې خبرې شوي او په خبره یې په راتلونکې کې به یاد بانک نیمګړې پروژې بېرته پیل کړي.دی په دې اړه وایي: (( هغه پروژې چې دلته پخوا عملي کېدې، اوس به بېرته په تدریج سره پیل شي او د دغو پروژو لویه برخه د نړیوال بانک له خوا حمایه کېدې. د دغو پروژو لویه برخه د روغتیا، کلینیکونو، سړکونو، ښوونځیو، ښوونې او روزنې، ټولنیزو خدمتونو او ټولنیز خوندیتوب په برخه کې وې. له نړیوال بانک سره زموږ خبرې دې پایلې ته رسېږي ،چې دغه پروژې په تدریج سره یوځل بیا د دوی ترملاتړ لاندې ونیول شي؛ دغه راز یو شمېر هېوادونه هم چې له دغو پروژو یې ملاتړ کاوه، لکه امریکا او هندوستان، تمه لرو ،چې خپل فعالیتونه بېرته پیل کړي. په دې برخه کې زموږ هڅې ادامه لري.))نظري په خپلو خبرو کې وویل، اسلامي امارت زیاتې اسانتیاوې برابرې کړې دي، ترڅو د آسیا پراختیایي بانک په ګډون نور بانکونه هم په افغانستان کې خپل فعالیت پیل کړي. نوموړي ډاډ وښود ،چې د بېکارۍ کچې د راټیټولو لپاره بېلابېل پلانونه په پام کې نیول شوي او نړیواله ټولنه باید د اقتصادي ودې لپاره د افغانستان پر اقتصادي او مالي برخو لګول شوي بندیزونه لرې کړي.نظري دغه راز غوښتنه وکړه ،چې نړیواله ټولنه دې بشري مرستې نه سیاسي کوي. عبداللطیف نظري په افغانستان کې د ځینو موسسو او انجوګانو په تړاو وایي، یو شمېر موسسې د اسلامي امارت له اصولو او قوانینو د سرغړونې له امله تړل شوي، خو د امریکا د نوي حکومت د پرېکړې پر اساس نه دي بندې شوې.نظري په دې اړه وایي: « په ټولیزه توګه ۵۰ موسسې په دې پروسه کې شاملې دي چې ټولې یې د ټرمپ له فرمانه وروسته نه دي تړل شوې. موږ خپله د یو شمېر موسسو فعالیتونه ځنډولي او غوښتنه مو ترې کړې چې شفافیت رامنځته کړي یا دا چې راپور وړاندې کړي. دوی باید د اسلامي امارت له معیارونو سره ځان سم کړي. ځینې نورې هم د یو شمېر پېښو او مسایلو له امله بندې شوې، لکه د سویډن کمېټه چې د قرآن سوځونې له امله یې فعالیتونه بند شول، ځکه چې دا زموږ ارزښتونه دي او موږ د دې ارزښتونو لپاره قرباني ورکړې. په ټولیزه توګه ویلي شم چې ۵۰ موسسې دي خو ټولې یې د امریکا د مرستو ځنډېدو له امله تړل شوي.))د اقتصاد وزارت مسلکي معین په داسې حال کې دغه څرګندونې کوي چې د ملګرو ملتونو د نفوسو صندوق اداري سیمه ییز مسئول اندېښنه ښودلې چې تر ۲۰۲۸ زېږدیز کاله به افغانستان کې روغتیایي خدمتونو ته د لاسرسي کچه محدوده پاتې شي او ممکن په هرو دوو ساعتونو کې یوه مور د زېږون پر مهال ژوند له لاسه ورکړي،خو د اقتصاد وزارت مسلکي معین شمشاد سره مرکه کې د ملګرو ملتونو د نفوسو صندوق د اندېښنو په تړاو وایي، دغه بنسټ دې پر خپلې پرېکړې له سره غور وکړي او خپلو فعالیتونو ته دې دوام ورکړي.

**د زندانونو چارو د سمون اداره:**

# بندخونو کې بندیانو ته اړین ژمني توکي وېشل شوي

د زندانونو چارو د سمون ادارې او همکارو بنسټونو له لورې د هېواد په بندخونو کې پر ۱۱ زره بندیانو او څه باندې ۱۱زره توقیفیانو او محجوزینو د ژمنیو اړتیا وړ توکو شاوخوا ۴۰۱ زره کڅوړې وېشل پیل شوي.

د دغې ادارې رئیس وایي: په دې کڅوړو کې تودې کمپلې، ګرمې جامې، پټوان، څادرونه، جمپرونه، جرابې، د ځان او جامو وینځلو صابونونه، د غاښونو کریم او بورسونه او ځینې نور ژمني او اړین توکي شامل دید .محمد یوسف مستري په خبره، د دې ادارې اړوندو ټولو بندخونو کې د بندیانو ژوندانه او روغتیا ته د لا ډېرې پاملرنې په موخه، د هغوی د ساتلو ځایونو(سلولونو) د ګرموالو په هدف یې پوره امکانات برابر کړي دي.مستري زیاته کړې: (( موږ د ژمي پرمهال په یو شمېر ولایتونو کې د لرګیو له بخاریو ګټه اخلو، په ځینو ولایتونو کې له ګازو کار اخلو، حتا له ډبرو سکرو ګټه اخلو او په هغو ولایتونو کې چې برښنا یې دایمي ده، له برښنا ګټه اخلو. د بندیانو خونې تودې دي او ګرمې اوبه هم ورکول کېږي، یا هم د اوبو او کوټو د تودولو لپاره امکانات په واک کې ورکول شوي دي.))مستري دغه راز وایي: د بندیانو د اړتیاوو پوره کولو لپاره تودې اوبه هم چمتو شوې دي. د مستري په خبره، دغه اداره تل هڅه کوي چې بندیانو ته لازمې آسانتیاوې برابرې او هر کال د ژمي په موسم کې محبوسینو، تورنو کسانو او ... **۳مخ**

# د بري راز په یووالــي کې نغښتــی دی

**عارف الله**

هغه ملتونه چې خپل وحدت او یووالی یې ساتلی دی، خپل دین، عقیده او فرهنګ یې ساتلی دی، خپل قوت یې ساتلی، د ولس او حکومت ترمنځ واټن او فاصله یې له منځه وړې ده او د خپل حکومت او نظام څښتنان دي. که د خپل ګران او محبوب هېواد څلورو خواوو ته نظر واچوو، وبه ګورو چې ۷ میلیونه تاجیکان دي، خپل حکومت او نظام لري، ۸ میلیونه ازبیکان دي، د خپل نظام څښتنان دي. همدارنګه ترکمنان، جلا حکومت او واکمني لري، ان تر ایران، ترکیې اوپنجاب پورې ملتونه چې خپل ځان یې پېژندلی، خپل اتحاد او یووالی یې ساتلی دی. که اقلیت هم دي پر نورو یې راج چلولی. د بېلګې په توګه په افغانستان کې پښتانه چې پر اکثریت یې نور مېشت قومونه هم قانع دي او اعتراف پرې کوي، خو بیا هم تاسې ولیدل چې د دربار ژبه دري وه او دا شل کاله په مسلسل ډول د هغوی واکمني هم وه. زما له یوه امریکایي خبریال سره مرکه وه او تقریباً دوه دري ساعته یې دوام وموند چې څرنګه وکړای شم په دې خبره د نوموړي قناعت حاصل کړم چې د دې خاورې اصلي مالکان پښتانه دي او د دې هېواد په آزادۍ کې یې له نورو قومونو زیاته قرباني ورکړې او پر لویو امپراتوریو یې واکمني کړې ده. هغه قوم او ملت چې ترهند او اصفهانه پورې یې تمدن انتقال کړ څرنګه یو دم ترهګر او د نړیوالو د سترګو ازغي وګرځېد، ځکه دا د نړیوال استعمار ګډ شعار دی چې اقلیت ته پر اکثریت ترجیح ورکوي او بل داچې بې اتفاقي واچوه او حکومت پرې کوه، نو دوی هماغه شعار پر افغانانو عملي کړ، د افغانانو ترمنځ یې د بې اتفاقۍ زهر وشیندل، د قومونو ترمنځ یې بېلوالی او جدایي هم راوسته او همدارنګه اقلیت یې پر اکثریت حاکم وګرځول چې په نتیجه کې یې خپلمنځي شخړو اوجنګونو ته لاره هواره کړه چې په کې په زرګونو بې ګناه هېوادوال په شهادت ورسېدل او هېواد مو په کنډوالو بدل شو، یو یې په بل ووژلو، یو ورور یې بل ورور ته په سنګر کې کیناوه او په همدې موخه یې په ایران او پاکستان کې ورته متعدد تنظیمونه جوړ کړل.

ایرانیانو د خپلو موخو لپاره افغانان په عراق، سوریه، یمن او لبنان کې وجنګول، قرباني افغانانو ورکړه او افتخار ایرانیانو واخیست، چې « لشکر فاطمیون » یې ښه بېلګه ده او له ۴۰۰ زرو زیات پر نشو روږدي یې افغانستان ته راواستول. همدارنګه پاکستان هم که له یوې خوا موږ ته په خپله خاوره کې ځای راکړ او له افغانانو سره یې همدردي کوله، په دې مقصد چې د روسانو په مقابل کې یې تقویه کړي ترڅو دا سور سیلاب چې نړۍ یې له وحشت او دهشته په وېره کې وه چې که دا سور سیلاب او سرې لښکرې د افغانستان له پولو ورتېرې شي، نو بیا د هغوی د ځواک او مقابلې لپاره داسې قوت نشته چې د هغوی مخه ونیسي. کله چې د وخت شوروي اتحاد د مؤمنو او مېړنیو غازیانو د قربانیو او مستحکم هوډ په پایله کې له شرموونکې ماتې سره مخامخ او شوروي اتحاد پر روسیه تبدیل شو او مجاهدین سرلوړي کابل ته داخل شول خپلې مغرضانه پالیسۍ ته یې ۳۶۰ درجې تغیر ورکړ او د یوه پر خلاف یې بل تقویه کړ، چې موږ اوس هم د هغوی هر فریبکارانه عمل ته د شک په سترګه نه ګورو او دا زموږ په بې عقلۍ دلالت کوي. اوس چې زموږ د هېواد یو شمېر ملي خاینان له هېواده په تېښته بریالي شوي دي او یو زیات شمېر یې په ترکیه کې دي. د همدغې شیطاني شبکې آی- اس- آی یو پلاوی هم ورغلی چې زموږ د هېواد د سرنوشت په اړه پرېکړې کوي چې د دوی دغه مذبوحانه هلې ځلې په ځای د دې چې نور هم خپل ځان نړۍ ته رسوا او شرمنده کړي، بله پایله نه لري. په سرکې مو ذکر وکړ، چې له سلو میلیونو زیات پښتانه په افغانستان او پاکستان کې شتون لري او دا هېوادونه یې پر خپلو بې دریغه قربانیو د نړیوالو ښکېلاکګرو د استعماري لښکرو له اشغاله ژغورلي دي، خپله واکمني نه لري، لره پښتونخوا چې له ډول ډول معدنیانو، ځنګلونو او پرېمانه سیندونو، قدرتي ګاز او فطرتي مناظرو ډکه ده، خوله بده مرغه واکمنان یې پنجابیان دي او پر پښتون غیرتي قوم یې خپل وطن تنور ګرځولی. همدارنګه بره پښتونخوا ( افغانستان) چې تورې دې لالا وهي، مړې دې عبدالله وهي، هغوی چې پخوا له روسانو سره جوړ وو، بیا له امریکایانو او همدارنګه د ناټو له اشغالګرو ځواکونو سره یې د ځمکني پوځ په توګه دنده مخ ته وړه، ځانونه د دې هېواد مالکان بولي. په داسې حال کې چې له ۷ اسلامي تنظیمونو څخه چې د روسانو په مقابل کې یې جهاد کاوه یوازې یو د رباني تنظیم ؤ، چې د واک په سر یې د خپلمنځي شخړو اور ته لمن ووهله او هېواد او ملت یې د نابودۍ ترکندې ورساوه. تاریخ هر څه ثبتوي. موږ باید هره خبره په سوچ وکړو او هر قدم په احتیاط پورته کړو، له تېرو ترخو تجربو او تاریخه زده کړه وکړو او خپل هېواد او ملت وژغورو.

# افغان اعلانات



**دعوت به داوطلبی**

نام پروژه : خریداری ۱۹،۰۰۰ لیتر تیل دیزل مرکز گرمی

د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی (خریداری ۱۹،۰۰۰ لیتر تیل دیزل مرکز گرمی) دارای کود نمبر) برشنا/۱۴۰۳/ باز داخلی/اجناس-۰۹۴) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های اجناس ویا سایت انترنتی dabs.af بدست آورده، آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۱۲ به ریاست تدارکات د افغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارائه نمایند، آفر های ناوقت رسیده و انترنتی قابل پذیرش نمیباشد.

تضمین آفر : مبلغ ۳٤,۲۰۰ افغانی

جلسه قبل از داوطلبی : روز سه شنبه مورخ ۱۴۰۳/۱۱/۳۰ ساعت ۱۰:۰۰ بجه قبل از ظهر در منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات برگزار میگردد.

جلسه آفر گشایی : روز یکشنبه ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۱۲ برگزار میگردد.

آدرس و محل آفر گشایی : منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.

آدرس اداره : د افغاستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل.

برای معلومات بیشتر به شماره تماس ۰۲۰۲۵۱۳۶۷۷ و ایمیل آدرس های ذیل به تماس شوید.

آدرس الکترونیکی :

abdulnasir.belal@dabs.af

abduljalal.hasas@dabs.af

**اطلاعیه کندز**

مارکیت میوه مکلیت ریاست شاروالی کندز واقع ناحیه سوم شهر کندز برای مدت یک سال به اجاره داده میشود. اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشتراک در مجلس داوطلبی آن را داشته باشند با درخواست های شان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز کاری به ریاست شاروالی کندز مراجعه نمایند. شرطنامه را ملاحظه نموده تامینات نقدا اخذ میگردد.۸۸۶

**اطلاعیه کندز**

استیدیو ورزشی مکلیت شاروالی کندز و اقع ناحیه اول شهر کندز برای مدت یک سال به اجاره داده میشود. اشخاص و افراد واجد شرایط که خواهش اشتراک در مجلس دوطلبی آن را داشته باشند با درخواست های شان اعتبار از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز کاری به ریاست شاروالی کندز مراجعه نمایند. شرطنامه را ملاحظه نموده تامینات نقدا اخذ میگردد.۸۸۷

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۴۹/۸۵ مورخ ۱۳۸۳/۳/۱۹ مرتبه محکمه ده سبز کابل جایداد واقع ولسوالی ده سبز به اسم محمد شفیق ، محمد رفیق ،محمد عتیق و صلاح الدین ولدان عبدالصمد ولدیت عبدالودود مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۱۷۴

**اطلاعیه مفقودی**

یک طغرا مهر وکالت دفاع شماره ۲۹۷۳ مورخ ۱۳۹۹/۹/۲۶ مربوط محترم سید یاسر احمدی فرزند سید محمد که شماره متذکره نیز درج آن میباشد مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند.۹۱۷۰

**اطلاعیه به کرایه دهی**

شرکت دولتی فارمسی ابن سینا تعمیر دواخانه ۲۹ خویش را واقع هوتل گولایی حصه اول خیر خانه مینه ناحیه یازدهم شهر کابل موقعیت دارد. در روشنی قوانین نافذه کشور طور مزایده به کرایه میدهد. اشخاص و افراد حکمی و حقیقی که خواهش قرار داد شعبه متذکره را داشته باشند ، شرطنامه متذکره را از مدیریت ملکیت های مدیریت عمومی خدمات شرکت امارتی فارمسی ابن سینا در بدل ۱۰۰۰ افغانی پول غیر قابل بازگشت دریافت نموده جلسه آفرگشایی ۷ یوم بعد از نشر اخبار بروز معیینه ساعت ۱۰:۰۰ بجه قبل از ظهر در مقر شرکت امارتی فارمسی ابن سینا برگزار میگردد. تضمین طبق مقررات اخذ میگردد.۹۰۹۰

**اطلاعیه تغییر مالکیت شرکت**

تشبیث شرکت تجارتی (آریانا افغان صحت )لمتید دارنده جواز نمبر (۲۲۹۶۵) طی یک قطعه عریضه و تصویب عنوانی این ریاست خواهان تغیرات شده اند که محترم وحید الله فرزند محمد عیسی خان رئیس تشبث با حفظ (۱٪) سهم خویش بحیث ریس جدید تعین و محترم ضیا الرحمن فرزند سید ملا جان ریس اسبق از ریاست استعفاو از جمله (۹۹٪ )سهم خویش (۹۸٪) سهم را به محترم وحید الله فرزند محمد عیسی خان ریس جدید واگذار نموده که سهم آن (۹۹٪) میشود و باقیمانده (۱٪) سهم را به محترم فرید الله ابراهیمی فرزند محمد عیسی خان دارنده تذکره نمبر ( ۷۲۰۵۲-۱۴۰۲-۰۵۰۱) واگذار نموده که نامبرده به حیث معاون جدید تعین میگردد.

بناء اشخاص ، موسسات و دوایر دولتی در مورد اگاهی حاصل نموده از تاریخ نشر اعلان الی مدت ده یوم به ریاست عمومی اداره ملی غذا و ادویه افغانستان واقع محمد جان خان وات متصل وزارت مخابرات اطلاع دهند.۹۱۷۲

**اطلاعیه لیلام**

ریاست عمومی استخبارات یک تعداد موتر ، موترسایکل ، ماشین آلات و پرزه جات داغمه استهلاک شده خویش را به مزایده گذاشته لیلام مینماید.

داوطلبان می توانند به تاریخ ۱۴۰۳/۱۱/۳۰ ساعت ۹ صبح به مرکز تعلیمی استخبارات واقع افشار سیلو مراجعه نموده ۱۵٪ تضمین نقدا اخذ میگردد.۹۱۷۶

---

**بندخونو کې...**

محجوزینو ته د سلولونو د ګرمولو ترځنګ، ګرمې جامې، کمپلې او نور اړین توکي وېشي.دی زیاتوي: (( د ژمي لپاره په مرکز کې هر بندي ته یو پټو ورکړ شو ،خو ځینو ولایتونو کې ونه رسېدل. همدارنګه هر بندي ته یوه کمپله او په ځینو سړو ولایتونو کې دوې کمپلې ورکول شوې دي. دا په داسې حال کې ده چې د تېر کال کمپلې هم له دوی سره شته . همدارنګه د ژمي لپاره جرابې، جاکټونه او نور هر ډول اړین توکي ورکړ شوي دي.)) د څرخي پله مرکزي زندان کې بندي کسان وايي: له دوی سره د ژمي په ساړه موسم کې د ژمنیو توکو مرسته شوې او ستونزو ته يې پر وخت رسېدنه کېږي.په څرخي پله زندان کې یو تن بندي وايي: (( له ټولو محبوسینو سره مرسته شوې، په دې کې کمپلې، پټوګان او جرابي شاملې دي او په ټولو خونو کې هر ډول امکانات برابر دي. همدارنګه ټول تشنابونه ګرمې او سړې اوبه لري او په دې تړاو ستونزه نه شته.)) د څرخي پله يو بل بندي وايي: (( د ژمي په پیل کې يې هر ډول اړين توکي موږ ته را ووېشل ،چې په کې جرابې، زېرلباس، نوې کمپلې، د غاښو بورسونه او مسواکونه، صابونونه او نور توکي شامل وو. د تېر کال زاړه وسایل يې له موږ ټول کړل.)) د زندانونو چارو د سمون اداره د مسؤلینو په وينا، د ژمي په ساړه موسم کې د زندانیانو اړتیاوې ډېرېږي او په دې برخه کې د زندانونو چارو د سمون اداره تل هڅه کړې ،چې بندیانو ته لازمې اسانتیاوې برابرې کړي.

**د افغانستان...**

د سرحدي فوق العاده زده کړو ۵ مې دورې څخه فارغ شوي دي.تازه فارغو شويو منسوبينو ته د توپوګرافۍ، توپچي، درنو او سپکو وسلو کارولو، سرحدي قوانينو او يو شمېر نورو برخو کې څلور مياشتې عملي او نظري مسلکي زده کړې ورکول شوې دي. دغه راز دغو مراسمو کې د يادې قوماندانۍ د عمومي خدمتونو ښوونځي او د عامه چارو ډيپارټمنټ څخه ۲۳ تنه د عامه چارو آمرين هم فارغ شوي دي. تازه فارغو شويو منسوبينو د هېواد په هر ګوټ کې خدمت کولو ته چمتووالی ښودلی دی.

**د بهرنيو بنسټونو...**

ويلي، خو امريکا هر کال ۲ ميليارده ډالره د خوړو نړيوال پروګرام ته ورکوي چې په بنديدو سره به يې په يمن، سوډان، د کانګو ډيموکراتيک جمهوريت او يو شمېر نورو بېوزلو هېوادونو کې د دې پروګرام فعاليتونه ودريږي)) د اسلامي امارت د اقتصاد وزارت چارواکي بيا د نړيوالو مرستندويو بنسټونو له خوا کېدونکې مرستې د هېواد د اقتصادي ودې لپاره اغېزمنې نه بولي.د اقتصاد وزارت وياند عبدالرحمان حبيب وايي: (( دا چې زموږ د اقتصادي ودې لپاره ټول پروګرامونه او فعاليتونه له خپلو عايداتي سرچينو تمويلېږي او په دې برخه کې د بهرنيو بنسټونو او هېوادونو په مرستو باندې متکي نه يو، نو زموږ پر اقتصادي ودې کومه منفي اغېزه نه لري،خو د دغو بنسټونو د فعاليتونو بندېدل د عامو خلکو لپاره د معيشتي ستونزو په حل کې کوم چې د اقليمي تغييراتو، وچکالۍ يا طبيعي حوادثو له خوا اغېزمن شوي وو، يوه اندازه اسانتياوې يې برابرولې ،چې د لنډ مهال لپاره کولی شي د يو شمېر کورنيو معيشتي ستونزو ته د رسېدنې په برخه کې خپل تأثيرات ولري،خو بيا هم د هېوادوالو لپاره د بهرنيو مرستو د رسېدنې په موخه، تدابيري او حمايتي برنامې موجودې دي او د تشويش وړ خبره نه ده.

**د پاکستان له ...**

پورې حاجي کمپ کې بنديان وو.سرچينې ليکلي، راخوشې شوي کسان د بشري مرستو له ترلاسه کولو وروسته خپلو ځايونو ته استول شوي.دا په داسې حال کې ده، چې په دې وروستيو کې زرګونه هغه بنديان بېرته هېواد ته راستانه شوي، چې د قانوني اسنادو د نه لرلو له کبله پاکستان کې نيول شوي وو.

**د هرات-کندهار...**

لري او د ۵۱ میلیونو، ۹۷۸ زره او ۹۹۹ افغانیو په ارزښت یې د تفصیلي سروې او ډیزاین چارې له افغان-جرمن ساختماني، سړکسازي او د وسپنې پټلۍ شرکت سره قرارداد شوی دی.دویمه برخه: د شینډنډ-فراه مسیر دی، چې ۱۲۰ کیلومتره اوږدوالي لري او د ۴۵ میلیونه، ۶۳۱ زره او ۲۶۷ افغانیو په ارزښت یې د تفصیلي ډیزاین چارې له هسک انجنیري خدمتونو شرکت سره قرارداد شوي دي.دریيمه برخه: د فراه-زرنج-غورغوري مسیر دی، چې ۱۸۸.۸ کیلومتره اوږدوالي لري او د ۶۹ میلیونه، ۲۷۸ زره او ۵۶۷ افغانیو په ارزښت یې د تفصیلي ډیزاین چارې له هسک انجنيري خدمتونو شرکت سره قرارداد شوي دي.څلورمه برخه: د غورغوري-لښکرګاه مسیر دی، چې ۱۷۱ کیلومتره اوږدوالي لري او د ۶۰ میلیونه، ۳۳۱ زره او ۴۰۸ افغانیو په ارزښت یې د تفصیلي ډیزاین چارې له آریا خان افغان ساختماني، سړکسازي او لوژستیکي خدمتونو شرکت سره قرارداد شوي دي.پنځمه برخه: د لښکرګاه-کندهار مسیر دی، چې ۱۳۷.۷ کیلومتره اوږدوالي لري او د ۳۷ میلیونه، ۳۱۵ زره او ۷۴۲ افغانیو په ارزښت یې د تفصیلي ډیزاین چارې له آریا خان افغان ساختماني، سړکسازي او لوژستیکي خدمتونو شرکت سره قرارداد شوي دي.د یادونې وړ ده، چې د یادې پروژې د تفصیلي سروې او ډیزاین چارو له بشپړېدو وروسته به د دې پروژې د بودجې تمویل ته په کتو یې عملي چارې هم پیل شي.

**د هرات صنعتي...**

په صنعتي ښارګوټي کې د ګڼ شمېر کارخونو د جوړولو چارې روانې دي.

**کندز کې ۳۰ تنه ...**

په تېرو څلورو مياشتو کې د دوی د څارنې ټيم له بېلابېلو درملتونونو او سوداګريزو مارکيټونو څخه دا توکي راټول او سوځول شوي دي.په ورته وخت کې د کندز اوسېدونکو د دې اقدام ستاينه وکړه او د تاريخ تېرو درملو او بې کيفيته خوراکي توکو د دوامداره مخنيوي غوښتنه يې وکړه.

**د کارخونو...**

.ده همدارنګه د کارخونو له مسؤلينو څخه غوښتنه کړې، چې د توليدي توکو کيفيت ته پوره پاملرنه وکړي.په خبرپاڼه کې څرګنده شوې، چې دغه وزارت د کورني صنعت د ودې او ملاتړ په موخه ګنې اسانتياوې برابرې کړي او په دې برخه کې لا ډېرو هڅو ته دوام ورکوي.

**۱۵۲۰۰ تنه ...**

ادا او د بديل معيشت برخه کې دې له افغانانو سره مرستې وکړي.د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت د معلوماتو له مخې، دغه وزارت د کوکنارو د بديل معيشت او د طبي بوټو د ترويج لپاره له يو شمېر نړيوالو بنسټونو سره په همغږۍ کار کوي.ياد وزارت پر نړيوالې ټولنې غږ کوي، چې له افغانانو سره دې د کوکنارو د بديل معيشت برخه کې مرسته وکړي.

**سږ کال نږدې...**

موده کې د احتمالي پيبنو د مخنيوي په موخه يې د دولتي او خصوصي سکټور د اووه زره او ۵۰۰ ځايونو اطفايوي سروې کړې او په وينا يې، د هېواد په کچه تر ۸۰ پورې د اور وژنې مرکزونه فعال دي. پيبنو ته د رسېدو او اور وژنې مسؤلين د پيبنو د کنټرول او مخنيوي په برخه کې د خلکو همکاري مهمه بولي او له خلکو غواړي، چې خپل کار ځايونه د اور وژنې په بالونونو سمبال کړي.دوی له هېوادوالو غوښتنه کوي، چې د پيبنو د کنټرول او مخنيوي په موخه دې د اور وژنې له مرکزونو سره پر وخت اړيکه ونيسي.

**ځوانان دې...**

سره مينه ښيي او دا چې ديني مدرسې د تېرو نظامونو پر مهال په سختو شرايطو کې د امريکايانو او نورو يرغلګرو له لورې له ډول ډول ننګونو سره مخ وې؛ مجاهدينو درته وساتلې، نن هماغو د مدرسو مجاهدينو تاسو ته آزادي راوړه، بايد چې د مدرسو او د هغوی د طلباوو قدر او ملاتړ وکړئ))

ده په دې برخه کې د همدغې مدرسې د بنسټګر پاچا خان صاحب د ژوند کيسه وکړه او ويې ويل چې د ثور له انقلاب وروسته بې له کوم جرم څخه هغه د کمونيستانو له لورې څو واري بندي شو.

ده زياته کړه چې د دوو جهادونو سرلاري او د حقاني د کورنۍ مشر مرحوم مولوي جلال الدين حقاني رحمه الله هم په دې مدرسه کې زده کړې کړې دي.

ده ټينګار وکړ چې د انقلابونو د ټينګښت او د نظامونو د ساتنې لپاره د ټينګ ايمان تر څنګ د ټکنولوژۍ او عصري علم زده کولو ته هم اړتيا لري.بايد چې ځوانان د عصري او ديني زده کړو په برخه کې ځانونه د کمال تر کچې ورسوي.ده زياته کړه ،چې د پوهنتون او ښوونځي تر څنګ موږ ديني زده کړو ته هم ضرورت لرو او په کار ده چې خپل بچيان مدرسو ته هم ولېږو، تر څو مو دنيوي او اخروي ژوند کامياب او ښايسته شي.ده پر ټولنيزو رسنيو د اسلامي نظام د ګواښونکو او تخريبوونکو په اړه وويل ،چې په دې کار سره دوی هيڅ نه شي ترلاسه کولی؛ بې له دې چې خپل دنيوي او اخروي ژوند خراب کړي.د خپلې وينا په پای کې يې خلک له نظام سره همکارۍ ته راوبلل او ويې ويل: (( دنيا کې هيڅ داسې نظام نشته چې خپل ولس ته يې مفتې پيسې او امکانات ورکړې وي، له تاسو هم غوښتنه کوو ،چې د ځينو کوچنيو ستونزو پر وړاندې د نظام مخالفت مه کوئ، ديني او عصري زده کړې وکړئ، کار او وظيفه ترسره کړئ او په ارامه خپل ژوند وکړئ)).

**گفتگو با امریکا ...**

درست بدانیم؛ این طور نشان ندهند که اگر نشستیم پشت میز گفتگو با آن دولت، فلان مشکل حل میشود.)) رهبر ایران، تاکید کرد که کشورش به هر گونه تعرض و تهدید امریکا پاسخ خواهد داد. دونالد ترمپ، رئیس‌جمهور امریکا، هفته گذشته فرمان بازگشت فشار حداکثری در برابر ایران را امضا و اعلام کرد که مانع دستیابی این کشور به سلاح هستوی خواهد شد.

**د اوبو او انرژۍ...**

یاد بند د ۲۳ مترو په لوړوالي سره د ۲.۹ میلیونه متره مکعبو اوبو د ذخیره کولو، د ۶۱ کېلوواټه برښنا د تولید او د شاوخوا ۵۶۰ هکتاره کرنیزو ځمکو د خړوبولو وړتیا لري.

**بلخ کې ۷ کلنه...**

هلوځلو پخلا شوې، چې لومړي د دواړو کورنيو له مشرانو سره جلا جلا ناستې وشوې، اختيارليکونه ترې واخيستل شول او د يوې عادلانه پريکړې له مخې بې سوله بيز ژوند پيل کړ.د يادو ښکېلو کورنيو مشرانو د اسلامي امارت له مسئولينو په مننې کولو سره ژمنه کړې، چې له دې وروسته به له يو بل سره هيڅ جنجالونه نه کوي بلکې د وروری ژوند به سره کوي.

**د فراه د چرګانو...**

او نيمروز ولايتونو ته لېږدول کېږي.صحرايي څرګنده کړه، چې په هر فارم کې له ۵ زره څخه تر ۲۹ زرو پورې چرګان ساتل کېږي.همداراز د خان محمد په نوم د یوه فارم مالک وویل، چې شاوخوا ۶ زره چرګان ساتي او له ۴۵ ورځو ساتنې وروسته يې د غوښې لپاره بازار ته وړاندې کوي.د يادونې وړ ده چې په دې وروستيو کې د هېواد په ډېرو ولايتونو کې د چرګانو د پالنې فارمونه زيات شوي او سلګونه هېوادوال په کې په کار بوخت دي.

**د قرغې بند سيمه...**

زياته کړه: تر اوسه (۳۰) جريبه غصب شوې ځمکه بېرته راګرځول شوې او دا لړۍ دوام لري، د غونډيو په لمنو کې له زرغونو سيمو او د قرغې بند سړک په شاوخوا کې ناقانونه غرفې او نور تأسيسات بېرته ويجاړېږي، ځکه د دغو خپلسريو له امله د يادې تفريحي سيمې چاپېريال او طبيعي ښکلا ته زيان رسېدلی دی. کابل ښاروالۍ د غصب شويو ځمکو بېرته راګرځولو ته ژمنه ده او فرصت غوښتونکو او قانون ماتوونکو ته به اجازه ورنکړي چې له امارتي ځمکو څخه شخصي ګټه پورته کړي.

**دافغانستان هليکوپټرې...**

هېوادونو ته انتقال شوې، چې اوس يې ۷ پروازه هليکوپټرې له ازبکستان څخه امريکا ته انتقال شوې دي.

**کابل؛ ښارې...**

۴- د ښاري قانون عملي کول: د ښار لپاره قوانين شته، خو ستونزه دا ده چې نه عملي کېږي. که ښاروالی، ترافيکي اداره او د نظم ساتني نور مسئولين دا قوانين جدي ونيسي، غير قانوني غرفې لرې کړي او د سړکونو پاکوالی وساتي، نو د ښار نظم به ښه شي.

د کابل ښاري نظم يوازې د حکومت مسئوليت نه دی، بلکې ټول خلک، رسنۍ، ديني عالمان او استادان بايد پکې ونډه واخلي. که د سړکونو غاړې ته پلورونکو ته متبادل کار برابر شي، د سړکونو پراخوالی ته پام وشي، د عامه پوهاوي کچه لوړه شي او د ښاروالۍ قوانين جدي ونيول شي، نو د کابل ښاري نظم ته به اساسي بدلون ورکړل شي.

# Hewad Daily

يکشنبه د شعبان المعظم ۱۰مه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د سلواغې ۲۱مه د 2025 م کال د فبروري 9مه



د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ
کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: ۰۲۰ - ۲۵۲۶۳٤۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰٤٤۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳


د کورنيو چارو وزارت لومړی مرستيال:

## ځوانان دې په عصري او ديني زده کړو کې ځانونه د کمال تر کچې ورسوي



د کورنيو چارو وزارت لومړي مرستيال مولوي محمد نبي عمري په خوست کې د مندوزيو ولسوالۍ اړوند د برخانخېلو مدرسې په جلسه کې ګډون وکړ، هغه مدرسه د دوو جهادونو د سرلاري مرحوم مولوي جلال الدين حقاني رحمه الله د زده کړو ځای دی او له نن څخه ۶۵ کاله مخکې جوړه شوې ده.ده د خپلې وينا په پيل کې د يادې مدرسې د حفظ له برخې فارغانو، د هغوی کورنيو او استادانو ته مبارکي وويله او تر څنګ يې وويل: (( دلته د مشرانو او ځوانانو راتګ ستاسو له دين او زده کړو ...۳مخ

خامنه ای:

## گفتگو با امریکا «شرافتمندانه» نیست

سیدعلی خامنوی، رهبر ایران، پیشنهاد امریکا برای گفتگو در باره برنامه هستوی این کشور را رد کرده و گفت که گفتگو با امریکا «عاقلانه و شرافتمندانه» نیست.خامنوی، این موضوع را در دیدار با فرماندهان نیروی هوایی ایران مطرح کرده و افزود: تجربه نشان داده است که گفتگو با امریکا نتیجه‌ای



ندارد.او افزوده است: «گفتگو با امریکا هیچ تأثیری در رفع مشکلات ایران ندارد؛ این را باید...ص۳

## بلخ کې ۷ کلنه دښمني پای ته ورسېده

د سرحدونو، قومونو او قبايلو چارو وزارت وايي، د بلخ ولايت په چمتال ولسوالۍ کې د دوو کورنيو ترمنځ اووه کلنه شخړه د يوې غونډې په ترڅ کې حل شوه.په دې غونډه کې د ياد ولايت د سرحدونو، قومونو او قبايلو چارو رياست د مسئولينو



په مشرۍ، قومي مشرانو او ديني عالمانو ونډه درلوده.دغه شخړه چې د ښکېلو لوريو له خوا د ځمکې د ملکيت پر سر راپورته شوې وه او ترمنځ يې د ژورو جنجالونو او اختلافاتو ترڅنګ ګڼ مالي زيانونه لرل، وروسته له اوو کلونو د اسلامي امارت د مشرانو په هلو ځلو حل او دواړه خواوې د سولې پر تړون سره کېناستې. په ورته مهال د همدې ولايت په دولت اباد ولسوالۍ کې هم دوه مروري کورنۍ له خپلمنځي تاوتريخوالي او ژورو جنجالونو وروسته د سرحدونو، قومونو او قبايلو چارو رياست د مسئولينو او مصلحينو په...۳مخ

## ۶ میدان فوتسال در فراه به بهره‌برداری رسید

حمیدالله فراهی، مسئول فوتسال در فراه، می‌گوید که شش میدان فوتسال با یک سالون ورزشی، به منظور توسعه فوتسال در مرکز این ولایت به بهره‌برداری رسیده است.مسئول فوتسال در فراه، می‌افزایند که این شمار میدان های فوتسال با هزینه شخصی باشندگان محل و بازرگانان به ارزش ۲۱ میلیون و ۸۰۰ هزار افغانی ساخته شده است.به گفته او، کار ساخت شش میدان



دیگر فوتسال در مرکز این ولایت جریان دارد و در آینده نزدیک به بهره‌برداری خواهد رسید.این شمار میدان فوتسال در مرکز فراه در مناطق «باغ کافه»، «باغپل»، «عسکرآباد»، «بابوکندک»، روستای «مساو» ولسوالی پشت‌رود و یک میدان دیگر در ولسوالی پشت‌کوه به بهره‌برداری رسیده است.

## د اوبو او انرژۍ وزير زابل کې عمري بند وکوت

د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست ملا عبداللطيف منصور او د زابل ولايت د اوبو او انرژۍ رئيس ملا عبدالکريم ذوالفقار، په دغه ولايت کې له عمري بند څخه ليدنه کړې ده.



باختر آژانس ته په رارسېدلي خبرپاڼه کې راغلي چې د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست له عمري بند څخه د ليدني پرمهال؛ د دغه بند د ساتنې او پاملرنې په اړه اړوندو مسئولينو ته اړينې سپارښتنې کړې دي.د عمري بند پروژه د زابل د مرکز قلات ښار په څلور کيلومترۍ کې موقعيت لري چې د څه باندې ۱۲۷ ميليونو افغانيو په ارزښت د موسمي سېلابونو د کنټرول، د کرنيزو ځمکو د خړوبولو او تر ځمکې لاندې اوبو د سرچينو د تقويې لپاره پلې شوې ده...۳مخ

## د فراه د چرګانو ۳۱۷ فارمونو کې لسګونه هيوادوال په کار بوخت دي

د فراه د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست مسئولين وايي، چې په دې ولايت کې د چرګانو ۳۱۷ توليدي فارمونه شتون لري، چې په ورځني ډول ۱۷ ټنه غوښه توليدوي.
د ياد رياست د کورنيو الوتونکو، کبانو او اقتصادي حشراتو مدير انجنير سردار محمد صحرايي باختر اطلاعاتي اژانس ته ويلي، چې د دې فارمونو له لارې نه يوازې د ولايت په کچه د غوښې اړتياوې پوره کېږي، بلکې د



سيمې لسګونو کسانو ته د کار زمينه هم برابره شوې ده.
نوموړي زياته کړه، چې له يادې ۱۷ ټنه غوښې څخه ۱۱ ټنه په فراه کې مصرفېږي او پاتې برخه يې هرات...۳مخ

## د قرغې بند سيمه کې د غصب شويو ځمکو د بېرته راګرځولو په اړه اقدام وشو

د څوارلسمې ناحيې مسئولينو د دې ناحيې اړوند د قرغې بند په شاوخوا کې د غصب شويو ځمکو د بېرته راګرځولو په اړه اقدام کړی، چې په پايله کې يې يو شمېر جوړ شوي غير قانوني تاسيسات ويجاړ کړي دي.د څوارلسمې ناحيې د ښاري خدمتونو آمر عبدالحق حقيار په دې اړه وويل: په تېرو کلونو کې يو شمېر غاصبينو او فرصت غوښتونکو په بېلابېلو پلمو د قرغې بند شاوخوا





ځمکه کې د ناقانونه تاسيساتو په جوړولو لاس پورې کړې و، چې، له پېژندنې وروسته يې د ويجاړولو په اړه اقدام شوي. نوموړي...۳مخ

## ننګرهار کې د نرګس ګل کلنۍ مشاعره ترسره شوه

د ننګرهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست له لوري د دې ولايت د خوږيانو ولسوالۍ په مېملې بڼ کې د نرګس ګل کلنۍ دوديزه مشاعره وشوه. په دغې مشاعره کې د هېواد له بېلابېلو سيمو شاعرانو، ليکوالانو، فرهنګپالو او د ادب مينه والو برخه اخيستې وه. د مسئولينو په وينا، د دغې دوديزې مشاعرې په ترڅ کې د دوو کورنيو ترمنځ يوه پنځوس کلنه دښمني هم ختمه شوه.

## تېره مياشت ۱۸۳۰۰ افغانان له پاکستان څخه هيواد ته راستانه شوي



د ملګرو ملتونو د کډوالۍ عالي کمېشنرۍ په يوه راپور کې ويلي، يوازې د روان زېږديز کال د جنورۍ په مياشت کې ۱۸ زره او درې سوه افغانان له پاکستانه راستانه شوي دي. د کډوالۍ عالي کمېشنرۍ زياته کړې چې په دغو راستنو شويو کې شاوخوا زر کسان په جبري ډول افغانستان ته استول شوي چې په اسلام اباد او راولپنډۍ کې نيول شوي وو. راپور زياته کړې چې په رااستول شويو زرو کسانو کې ۸ سوه کم او زيات يې ښځې او ماشومان دي چې د بېلابيلو اسنادو درلودونکي دي. راپور زياته کړې چې دا شمېر د تېر کال په پرتله دوه چنده زيات شوی دی.

## د مالیې وزير لغمان ته سفر وکړ

د ماليې وزير ملا محمد ناصر اخوند د خپلو رسمي ولايتي سفرونو په لړ کې، د دغه وزارت د مالي او اداري سلاکار او د عوايدو لوي رياست د حقوقي خدمتونو او پاليسۍ د رئيس په ملتيا لغمان ولايت ته سفر وکړ.ملا محمد ناصر اخوند د دغه سفر په لړ کې د لغمان ولايت له مستوفيت او هلته د ملي بانک د ولايتي څانګې له چارو څخه د ليدنې پرمهال، د عوايدو راټولولو بهير په لګښتونو کې د سپما اصل په نظر کې نيولو او د بانکي خدمتونو چارې له نږدې وارزولې او د چارو د لا ښه والي په موخه يې مسئولينو ته اړينې سپارښتنې کړې دي.همدارنګه د ماليې وزير او مل پلاوي د ولايتي مسئولينو پرمختګونه ستايلي، د هغوي ستونزې يې واورېدلې او شته ستونزو ته د رسېدو په موخه د اصولي اجراءاتو بشپړ ډاډ ورکړل شو.

## د لوګر د پوهنې رياست سره د درسي توکو مرسته وشوه

د لوګر ولايت د پوهنې رياست مسئولين وايي، چې د يوې همکارې موسسې له لوري د دغه ولايت د پوهنې رياست سره د شاوخوا ۲۴۵ زره ډالرو په ارزښت د اړينو درسي توکو مرسته شوې ده. د ياد ولايت د پوهنې رئيس عبدالرحمٰن حميدي ويلي، چې په دې مرسته کې څه باندې ۲۲۰۰ کېټه درسي توکي شامل دي، چې په هر کېټ کې د ۲۰ تنو زده کوونکو لپاره لس قلمه بېلابېل درسي توکي ځای پر ځای شوي دي.



دغه درسي توکي به د راتلونکي نوي ښوونيز کال له پيل سره د ۲۸۷ ښوونځيو د لومړنيو دورو پر نږدې ۴۵ زره زده کوونکو ووېشل شي.